


## دا دين د الله جل جلاله دی، نو بيا ولې نه بريالي کيږو؟

ډېر ځله د انسان په ذهن کې دا اند ښېنه پيدا کېږي، چې کله دا دين د لوی الله له خوا راغلی، او په دې لاره کې چې څوک هڅې کوي، د الله تعالی لپاره کار کوي، او د دې دين پر خلاف کار کونکي، په اصل کې له الله څخه بغاوت کونکي دي. نو بيا ولې باغيان برياليتوب تر لاسه کوي، او د دين پر وفا داره وګړو ولې ظلم کېږي؟؟

خو هغه څه چې په پورته کرښو کې بيان شول، پر هغو تر غور وروسته تاسې خپله د دې پوښتنې ځواب تر لاسه کولای شئ.

په حقيقت کې دا د هغې آزادۍ لازمي نتيجه ده، چې الله تعالی د امتحان په موخه انسان ته ورکړې ده، که چېرې د الله تعالی مشيت او رضا دا واې چې د زمکې پر سر يوازې د الله جل جلاله اطاعت وشي او د هغه د رضا پر خلاف هېڅ ډول کار تر سره نشي، نو هغه به ټول انسانان مطيع او فرمان بر داره پيدا کړي وای، لکه څنګه چې څناور، ونې، سيندونه او غرونه د الله تعالی مطيع او فرمان بر داره دي.

نو که چيرې انسانان هم په فطري ډول د الله جل جلاله مطيع وای، بيا به په دې بنه نه د کوم امتحان چانس تر لاسه شوی وای، او نه به په هغې کې چا ته د برياليتوب په نتيجه کې د جنت د ورکړې او د ناکامۍ په صورت کې دچا د دوزخ په اور کې د اچولو سوال رامينځ ته کيده.

نو کله چې الله تعالی د هغې طريقې پرځای دا طريقه غوره کړې چې د ټولو انسانانو او د هغوی د هر فرد آزميښت او امتحان واخلي، نو د هغې لپاره بيا دا ضروري وه چې هغوی ته د ټاکنې او ارادې (د ازموينې د ضرورت په انداز) آزادي ورکړي.

او چې کله الله تعالی دوی ته دا آزادي ورکړې، نو بيا دا ممکنه نه ده چې الله تعالی دې له پورته نه مداخله وکړي او په زور سره دې، باغيان ناکام او وفاداران دې بريالي کړي.

د دې آزادۍ په چاپېريال کې دحق او باطل تر مينځ کشمکش روان دی، په دې کې دحق پيروان او د باطل علمبرداران او عام انسانان (چې په هغوی کې عام مسلمانان هم شامل دي)، دا ټول د امتحان په دې ډګر کې خپل خپل امتحان ورکوي.

دا يوه ډګريزه ازموينه او مقابله ده، او په دې مقابله کې که چېرې د حق په لاره کې هڅه کونکي ډېر ول کېږي، نو د دې معنا دا نه ده چې حق ناکام شوی دی او الله تعالی په چوپتيا د خپل دين ماتې او مغلوبيت ويني، بلکې د دې معنا دا ده چې د حق لپاره کار کونکي د الله تعالی په دې امتحان کې ډېرې درجې تر لاسه کړي.

پر دوی باندې ظلم کونکي او هغه ټول کسان چې د دې مقابلې او ازموينې په ترخ کې يوازې بې طرفو اوليدونکو نقش ولوبوي، يا هغه چې دحق له پلوي څخه اوړه وباسي، يا هغه چې کله باطل لوری غالب او برلاسی وګوري، د هغه ملاتړ او ملګري وکړي، نو دا ټول کسان خپل آخرت او خاتمه تر پخوا لا زيات ته خرابوي.

ابو الاعلی المودودي رحمه الله

اصلاح ملی را از اینجا بدست آورید

**کابل:** تايمني، چهار راهی حاجي محمد داد, سرک ۴, دفتر مرکزی جمعيت اصلاح. تيلفون: ۰۷۹۹۳۹۴۰۱۵/۰۲۰۲۲۰۴۳۰۵

**کابل:** کوته سنگی، سرک سيلو، بلاک های شاداب ظفر، انتشارات اصلاح افکار: موبايل: ۰۷۷۸۱۹۱۳۸۲

**کابل:** شهر نو, چهار راهی انصاری, کتاب فروشی رسالت. ۰۲۰۲۲۰۳۳۵۹

**کابل:** انتشارات مستقبل مقابل بلاک های شاداب ظفر, ۰۷۷۸۸۷۰۳۰۵

**کابل:** کمپيوتر فروشی الکاموي جاده نادر پشتون, مارکيت الله نظر منزل۲ دوکان ۲۳/ . ۰۷۹۹۳۹۰۸۱۹

**کابل:** کابل ده افغانان کتاب فروشی بيهقی

**کابل:** انتشارات بنياد علمی و فرهنگی مسجد جامع پل خشتی ۰۷۹۹۰۱۱۱۱۱ / ۰۷۵۲۲۲۲۲۲۲

**ننګرهار:** جلال آباد, د محاکمو رياست شاته چهل متره سرک, بنی لاس, څلورمه کوڅه, لومړی کور د جمعيت اصلاح دفتر (ابو يوسف تعليمی مرکز) تيلفون: ۰۷۰۰۶۳۲۴۸۰

×د شيرين دل پلازې لاندې پوړ, نقيب کتاب پلورنځی. تيلفون: ۰۷۷۲۸۲۸۶۴۹/۰۷۰۰۹۵۶۴۲۳

**کندهار:** شهر نو هرات سرک خوشبخت صالون ته مخامخ سوري مينه د جمعيت اصلاح دفتر تيلفون: ۰۷۰۰۳۰۸۲۷۱ / ۰۷۰۰۶۶۸۹۴۸

**لغمان:** مهترلام ښار, حمزه مارکيټ تيلفون: ۰۷۹۹۴۴۲۹۲۰

**هرات:** سرک بانک خون، جادة مسجد جامع باغچة مهتر، انجمن اخلاق و معرفت ۲۳۵۵۹۰ – ۰۷۰۰۴۳۰۲۳۳– ۰۷۹۹۲۰۶۱۹۷ – ۰۷۹۹۱۰۹۰۷۳

**بلخ:** تيلفون: ۰۷۰۰۵۴۲۲۱۱ / ۰۷۹۹۶۹۴۲۴۵

**کندز:** شهر کندز، جاده ولايت، کوچه حاجی ميری، مؤسسه تحصيلات عالی سلام ۰۷۸۷۷۰۳۷۲۴

**بغلان:** پلخمری، مارکيت اتفاق کتاب و قرطاسيه فروشی رسالت ۰۷۷۷۴۷٦٤٦۹ / ۰۷۰۰۵۸۹۸۵۷

**لوګر:** مرکز, مدينه مارکيت سرک مسجد جامع, کتاب فروشی سادات, سيد عبدالحميد هاشمی, تيلفون: ۰۷۰۰۰۴۴۹۸۱

**لوګر:** محمدآغه, واغجان بازار, پهلوی کلنيک حسين خيل, تيلفون: ۰۷۷۵۴۱۳۸۷۶

**پکتيا:** د ګرديز ښار, مرکزي چوک، د نيي نمايندګي وحيد الله: ۰۷۷۹۲۱۳۸۲۲

**خوست:** افغان تاور شاته خوست مرکزی طبی لابراتوار دوهم پوړ د جمعيت اصلاح ساحوی دفتر ډاکټر محمد ګلاب: ۰۷۹۹۱۷۴۵۴۶/۰۷۷۷۱۷۴۵۴۶

**تخار:** بازارچه کتاب دکان مولوی حبيب الرحمن ۰۷۷۹۶۳۴۱۹۲

**بدخشان فيض آباد:** ۰۷۷۵۲۷۰۵۰۸ / ۰۷۰۷۸۳۱۳۶۴

**زابل:** ۰۷۰۰۳۰۱۹۴۸

**فراه:** جاده مخابرات دست راست مرکز علمی و فرهنگی توحيد ۰۷۰۳۲۰۲۰۴۴

**کونړ:** د معارف رياست ته مخامخ د جمعيت اصلاح ساحوي دفتر

**پيښور:** مرکز فرهنگی اسلامی افغانستان/ تيلفون: ۰۹۱۵۸۵۲۷۹۵

قیمت یک شماره ۱۰ افغانی




بجز اصلاح اراده دیگری ندارم

هفته نامه اصلاح ملی

داسلام داصیل فهم منبر

Email:eslahmilli@gmail.com
Www.EslahOnline.Net

دلیکوال پلاوي تر نظر لاندي

دامتیاز خاوند:

جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان

رئیس هیأت تحریر:

عبدالفتاح جواد

مدیر مسئول:

نقیب الله حمید 0774327438

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001202080036
(افغانی)

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001201080036
دالر امریکائی

دیزاینر: محمد مسلم حریر
Mob:0788298571




## سرمقاله

# فرجام کار بی بنیاد چنین است!

برق که یکی از نیازمندی های مهم و حیاتی به حساب می رود، از آغاز حکومت مؤقت تا به امروز توجه بایسته در این مورد صورت نگرفت و کار بنیادی و اساسی ای که تأمین کننده نیازهای مردم در آینده باشد تا هنوز صورت نپذیرفته است.

به اساس اظهارات مسئولان دولتی، علت اساسی این قضیه عدم دلچسپی و توجه دونرهای غربی در این زمینه است. به یادداریم که روزی حامدکرزی در کنفرانسی به صراحت اظهارداشت: غربی ها نمی نمی خواهند که کاربنیادی در این کشور صورت بگیرد و بندهای کلان برای ما بسازند.

در پیوند به این موضوع بایستی گفت: از یک سو، واقعیت دارد که غرب در پی منافع خود در این کشور است و طوری تعامل می کند که زمینه های تحقق خواست ها و منافع شان را تأمین سازد، ولی از سوی دیگر، نبایستی کم کاری های خود را نادیده بگیریم و توجیه نادرست نماییم و بارهمه مشکلات را بدوش دیگران بیندازیم؛ دست کم بودجه انکشافی دست داشته خود را در مورد بند سازی و کارهای اساسی در مورد برق به مصرف می رساندیم، تا چه زمان ازچنراتورها استفاده کنیم؟ و اگر به مشکل نفت مواجه شویم، چنراتورهای نفتی نیز از کار می افتد، بازهم فضای تاریکی شهر ودیار ما را در می نوردد و همچنان تا چه زمان چشم ما به انتظاربرق کشورهمسایه دوخته باشد، این رویکردهای مقطعی، فرجامش چون امروز خواهد شد.

پیش بینی ها طوری بود که کشور به جایگاه صادرات برق نزدیک شود، ولی می بینیم که اکنون دولت حتا برای تأمین نیازهای ابتدایی داخلی خود به مشکل گرفتار شده است، براساس آنچه که پیش بینی شده بود میزان تولید برق و بندسازی های بزرگ در نقاط مختلف کشور باید افزایش داده شود و هرسال در این مورد پیشرفتی صورت گیرد، ولی با تأسف داریم در این مورد مسیرانحطاط را می پیماییم.

اتفاقی که اخیراً در مورد برق رخ داده و به اساس گفته ی رئیس تجارتی شرکت برشنا خط ۲۵۰ کیلووات در حیرتان قطع شده است، در حالی که بیشتر مردم این توجیه مسئولان را نمی پذیرند چون گزارشاتی در این مورد وجود دارد که افغانستان ازپرداخت مصارف برق به کشورهمسایه ازبکستان عاجزشده و قطع ازسوی آن کشورعمدا صورت گرفته است.

به هرحال، این موضوع ازیک طرف، ناشی ازسوء مدیریت می شود و ازطرف دیگر، پیام روشن می دهد که مسئولان عزم خود را جزم کرده در زمینه کاربنیادی و اساسی در این مورد توجه نمایند و از دریاهای سرشارکشور استفاده بهینه کرده و شهر و دیار خود را با امکانات خود روشن سازند.

نبایدازاین بیشتراز زیربار مسئولیت ها فرار کرده و کم کاری های خود را توجیه کنیم و بودجه انکشافی خود را منجد بگذاریم و عامل همه معضلات دیگران را بدانیم.

# ترکومه باید انتظار وباسو چې پولیس مو "ملي" شي؟

احمد ضیاء رحیمزی

د تېرې اونۍ په اوږدو کې یوه مهمه موضوع چې د خبرونو غټ سرټکي يې جوړول، د مشرانو جرګې په غونډه کې د کورنیو چارو د وزیر مجتبی پتنګ هغه څرګندوني وې چې په هېواد کې يې د پولیسو د وضعیت او په ټوله کې دهېواد د امنیتي وضعیت په اړه وکړې.

مجتبی پتنګ، چې له شاوخوا دوو میاشتو راهیسې د کورنیو چارو د وزیر په توګه کار کوي، یو مسلکي پولیس دی چې په کورنیو چاور وزارت کې يې هم بېلابېلې دندې ترسره کړې او بالاخره د وزارت مقام ته رسېدلی، د هېواد پولیسو او په ټوله کې د امنیتي وضعیت په اړه د نوموړي څرګندوني که څه هم تر ډېره بریده پر واقعیتونوولاړې ښکاري، ځکه هغه څه چې نوموړي د سیمه ییزو پولیسو یا اربکیانو په اړه وویل دیوې محدودې کړۍ پرته د ټول افغان ولس د زړه آواز ښکاري، خو له بله اړخه بیا دا څرګندوني لدې امله خوندورې نه وې چې دا پوښتنه يې د هر سړي په ذهن کې را ولاړوله چې که په افغانستان کې روان ناورین ته په کتو او د تېرو څه باندې یوولسو کلو په تېرېدو سره زمونږ د پولیسو او امنیتي ځواکونو حالل دا وي ، نو اوس چې دادی ورو ورو د هېواد امنیتي مسؤولیتونه هم دوی ته سپارل کېږي او تر ۲۰۱۴ کال وروسته به د ټول هېواد امنیتي مسؤولیت ددوی پر غاړه وي،دوی به وکولای شي د هېواد له ملي ګټو دفاع وکړي؟

پر افغانستان د پخواني شوروي اتحاد تر یرغل وروسته د افغانستان امنیتي ځواکونه ددې هېواد د نورو بنسټونو او ادارو په شان له مسلکي پلوه هم مخ په کمزورتیا ولاړل او له ټولنیزو اړخونو څخه هم له سختو ګواښونو سره مخ شول چې له هغې نه يې یو د قومي او سمتي ملیشه جوړونې د فرهنګ ترویج و چې له شمال څخه پیل او بیا يې نورو ولایتونو ته هم سرایت وکړ، دغه سمتي او قومي ملیشې دهغه وخت د شوروي یرغلګرو سوغات و چې په افغانستان کې د شوروي تر سقوط وروسته په کورنۍ جګړه کې هم وکارول شوې اوتر ننه يې اغېزې او اثرات پر ځای پاتې دي.



د مودې په تېرېدو سره د افغانستان ملي امنیتي ځواکونه کمزوري کېدل چې دغه کمزوري په افغانستان کې د کمونیست نجیب د واکمنۍ د ړنګېدو پرمهال تر بل هر وخت ښه څرګنده وه، خو په تاسف چې د نجیب د رژیم په ړنګېدو او په افغانستان کې دجهادي تنظیمونو د خپل منځي جګړو له پیل سره دا ځواك په بشپړه توګه وشړېد ، د امنیتي ځواکونو روزل شویو افسرانو چا د جګړې له یوه اړخ سره او چا هم دجګړې له بل اړخ سره ملګرتیا غوره کړه او یو شمېر نور هم چې یوې خواته يې هم د ملګرتیا سترګې نه اوښتې، په داسې کارونو بوخت شول چې یوازې ځان اوخپلې کورنۍ ته یوه مړۍ ډوډۍ پیدا کړای شي.

د امریکا په مشرۍ د لویدیز استعمار د هر اړخیز یرغل په پیل کې د هغه نورو سترو جفاوو تر څنګ چې له افغانانو او افغانستان سره وشوې یوه يې دا وه چې ددې پرځای چې د نړۍ په بېلابېلو هېوادو کې خواره واره د افغان د امنیتي ځواکونو د روزل شویو کدرونو او افسرانو په را غونډولو سره د افغانستان نیم او نیمګړي امنیتي ځواکونه سره را ټول اوبېرته منظم کړي ،پاتې ځواك يې هم ونړولو اودلوېدیزو شعاري ارزښتونو لکه ډیموکراسۍ، بشري حقونو او ......... پربنسټ د لنډ مهاله کورسونو اوترینینګونو په ورکولو سره یې محدود شمېر ځواك ( د پولیسو او اردو په بڼه) پر افغانستان وتپلو.

تر دې هم لابد دا و چې دغه نیمګړي روزل شوي پولیس بیا د هېواد دکورني امنیت دساتنې پرکار د ګومارلو پرځای، په هغه جګړه کې هم وربښکېل کړای شول چې امریکا اونورو لوېدیزوالو پر ټول افغانستان تپلې ده او د افغانستان د بنسټونو له ورانولو او په زر ګونو انسانانو له وژلو سره سره اوس هم لا روانه ده.

همدارنګه امریکا اولوېدیز په افغانستان کې د نورو هغه تپل شویو فورمولونو ترڅنګ چې پر افغان حکومت يې وتپل یوځل بیا يې د ملیشه جوړونې کړغېړنه پروسه هم پیل کړه او د امنیتي او ټولنیزو چارو د ډېرو کارپوهانو هغه نظریاتوته یې چې دا ملیشې به په افغانستان کې روان ناورین لاپسې ډېر کړي،هېڅ پاملرنه ونه کړه.

امریکا او نړیوالې ټولنې یوې خواته په افغانستان کې دطالبانو د نظام تر سقوط وروسته پدې نامه چې غیرمسؤولې وسله والې ډلې باید بې وسلې شي، د ډي، ډي، آر او ډاياك په نامه دوه ناکامې پروسې پيل کړې او د نورو په فساد لړليو او ناکامو پروسو په څېر يې له افغانستان سره د مرسته شويو پيسو غټه پانګه پرې مصرف کړه ، بل لوري ته يې بيا د اربکيانو په نامه هماغه د پخواني شوروي اتحاد د وخت ناکامه او افغانستان ورانونکې د مليشه جوړونې تجربه بيا تکرار کړه او پدې توګه يې په افغانستان کې د يوه داسې ملي ځواك د جوړښت مخه ونيوله چې يوازې د خپل هېواد ملي ګټې او دخپل ولس ارزښتونه ورته لومړيتوب ولري، او په روان بحراني حالت کې وکولای شي د خپلو خلکو ستونزې حل کړي.

اوس چې د کورنيو چارو نوی وزير د مشرانو جرګې په غونډه کې اعتراف کوي چې د افغانستان پوليس لا هم ملي پوليس نه دي، او دده په خبره له تېرو وزيرانو څخه ورته تنظيمي او سمتي پوليس په مېراث رسېدلي دا پوښتنه مطرح کېږي چې د تېرو يوولسو کلونو په موده کې د پوليسو او اردو په جوړښت د شوي لګښت په پايله کې مونږ څه ترلاسه کړي دي؟

آيا د افغانستان دحکومت د نورو ادارو په څېر چې په تېرو څه باندې لسو کلونو کې يې يو شمېر د فساد او يوشمېر نورې يې دخپلوی پاللو ، نه پاملرنې او چارواکو د بې کفايتۍ اونورو ډول ډول ستونزو له امله له سقوط سره مخ دي او دادی نن دهمدې ټولو بې کفايتيو په برکت افغانستان په ټوله نړۍ کې د لومړۍ درجې مفسد هېواد په توګه اعلان شو، زمونږ پوليس او اردو چې يوه ته يې دهېواد د کورني اوبل يې د بهرني امنيت دمسؤوليت دروند پېټی ور په غاړه دی، له همدې برخليك سره مخ دي؟

بل لوري ته دې ټکي ته هم بايد پاملرنه وکړو چې د کورنيو چارو وزير سترپاسوال مجتبی پتنګ دا اعلان چې د تېرو څه باندې لسو کلونو په موده کې د شويو لګښتونو سره سره افغانستان لا هم د ملي پوليسو له شتون څخه محروم دی، په داسې يوه وخت کې ترسره کېږي چې په ځينو ولايتونو کې همدا اوس د بهرنيو ځواکونو له وتلو سره د سيمو امنيت ملي ځواکونو (اردو او پوليسو) ته سپارل کېږي او ۲۰۱۴ کال ته چې د هېواد د امنيت چارې به په بشپړه توګه دغه ځواکونو ته سپارل کېږي، ډېره کمه موده پاتې ده او مونږ وينو چې بهرني هېوادونه په خپله پيل کړې جګړه کې تر ماتې خوړلووروسته اوس لګيادي، له افغانستان څخه يو په بل پسې پښې سپکوي.

دکورنيو چارو د وزير دا خبرې چې غواړي تر دې وروسته د پوليسو په ليکوکې اصلاحات راولي او همدا راز دا خبره چې غواړي سيمه ييز پوليس د ملي پوليسو په ليکو کې مدغم کړي دواړه له ډېرو اړخونو د اندېښنې وړ دي، لومړۍ داچې دا اصلاحات به څومره موده ونيسي او ددې لپاره څه ضمانت شته چې بيا به دهمدې ښاغلي پتنګ د وزارت ترسيوري لاندې روزل شوي پوليس (سره لدې چې اوږده موده ورته انتظار هم وشي) ملي پوليس وي؟ او بيا به د افغان حکومت بهرني دوستان چې د دې حکومت پر هره برخه اوهر پلان کې د خپل نظر له تپلو سره عادت دي، د ملي پوليسو د اصلاحاتو اوريفورم په هغه پروسه کې چې ښاغلي پتنګ پيل کړې مداخله نه کوي؟

بله دا چې ښاغلی پتنګ غواړي سيمه ييز پوليس يا اربکيان د ملي پوليسو په ليکو کې ور ګډ کړي، اوس خبره داده چې ټول افغانستان ددې شاهد دی چې په هره سيمه اوولايت کې د سيمه ييزو پوليسو په نامه جوړې شوې مليشې دهغه سيمې د زور واکو او چارواکيو او آن چې د مرکزي حکومت د لوړ پوړيو چارواکيو تر اغيز لاندې کسان دي، دا کسان په ډول ډول جنايتونو اوجرمونو کې لاس لري چې تر ټولو کم جرم يې په خپلو سيمو کې د بې ګناه انسانانو د وينې توينه ده.

ددې لنډه او تر ټولو غوره بېلګه يې په دايکنډي اوبغلان ولايتونو کې د پوليسو دڅو هغه افسرانو بغاوت ګڼلای شو چې په دې وروستيو کې را منځ ته شو او دواړه لوري د دولت له ډېرو لوړ رتبه کسانو له خوا حمايه کېدل.

اوس که چېرې دې ته ورته نور جنايت کاران چې په سرې وژنه، غلا، لوټمار، جنسي تېريو او نورو جرمونوکړ دي،پرته له دې چې سمه اوکره پلټنه يې وشي او جرمې دوسيې يې وځېړل شي د ملي پوليسو ليکو ته ورګډ کړای شي، نو آيا دا به بيا هم همدغه ستونزه تکرار نه کړي چې دا اوس روانه ده او دکورنيو چارو وزير د خلکو د استازو په وړاندې ترې نه سر ټکوي؟

دې ټولو چارو ته په کتو سره داسې نه ښکاري چې دکورنيو چارو نوی ټاکل شوی وزير چې په خپل مسلکي توب ډېر وياړي ، وکولای شي په لنډه موده کې دې دافغانستان دغه تيت اوپرك پوليسي ځواك په ملي پوليسو بدل کړي.

اوس په داسې حال کې چې ښاغلی پتنګ اعتراف کوي چې د افغانستان پوليس تر اوسه لا ملي نه دي او دده په خبره د همدې غير ملي پوليسو سيمه ييز او سياسي جوړښت په هېواد کې د نا امنيو د ډېرېدو يو لامل دی څه ډول کولای شو تمه ولرو چې تر دې وروسته به د نورو ادارو ارګانونو په څېر د کورنيو چارو په وزارت او په تېره بيا د ملي پوليسو د جوړښت په کار کې دا ډول ستونزې خنډ نه جوړوي او بيا به هم افغان ولس کلونه کلونه د بې شمېره لګښتونو سره سره ددې انتظار نه باسي ترڅو په هېواد کې دجرمونو د کچې د راټيټولو او د روان ناورين په برخه کې د مرستې لپاره ملي پوليس ولرو؟

دا هغه اندېښنې دي چې متاسفانه د افغانستان د تېرو څو کلونو ترخو تجربو ته په کتو سره د هر بادرده افغان په ذهن کې شتون لري او زه باور لرم چې نه ښاغلی پتنګ او نه هم د افغان اوسني حکومت نور چارواکي کولای شي هغې ته قانع کونکی ځواب ووايي او د خلکو دا اندېښنې لرې کړي.

# که صادرات زیات او د صنایعو څخه ملاتړ ونه شي
# افغانستان به همېشه د ګاونډیو محتاج وي

راپور عبدالرزاق حبیبي

څه موده مخکې د افغانستان د پانګې اچونې د ملاتړ ادارې یا آیسا لخوا د صنایعو یو ننداړتون جوړ شوی و، چې یو شمېر بهرنیو او داخلي سوداګرو او سرمایه کارانو په کې ګډون درلود. افغان ولسمشر حامد کرزي په دغه غونډه کې ګډون درلود او له ګنو سیاسي موضوعاتو ترڅنګ یې د افغانستان په صنعتي پرمختګ هم خبرې وکړې، هغه له افغانانو وغوښتل چې خپل افغاني تولیدات و پیري او له هغوی څخه ګټه واخلي.

سره ددې، چې د پانګې اچونې د ملاتړ اداره (آیسا) وایي، چې د تېر کال په پرتله په افغانستان کې پانګه اچونه زیاته شوې ده، د نوموړې ادارې د راپور له مخې چې تېر کال په افغانستان کې ۴۵۸ ملیونه ډالره پانګه اچونه شوې وه، خو سږکال دغه کچه ۵۵۳ ملیونو ډالرو ته پورته شوې ده، د آیسا په خبره، چې په ۲۰۱۳ میلادي کال کې به دغه کچه نوره هم پورته شي.

خو لکه څنګه چې ټولو ته معلومه ده، چې په تېرو یوولسو کلونو کې افغانستان د سیمې هېوادونو او په ځانګړې توګه د ګاونډیو په اقتصادي بازار بدل شوی او ددې هېواد له وړو صنایعو او مصارفي موادو څخه نیولې آن تر ماشین آلاتو او ثقیله صنایعو پورې ټول له بهرنیو هېوادونو څخه واردېږي او افغانستان په یو وارداتي هېواد بدل شوی دی. یا په بل عبارت زمونږ واردات د صادراتو په نسبت په نشت حساب او د افغانستان صادرات هم د دولت او نورو ملاتړ کوونکو ادارو لخوا نه حمایه کېږي، تر څو په خپلو پښو ودرېږي او د صادراتو او وارداتو ترمنځ شته ستر واټن راکم شي.

دا چې په تېرو یوولس کلونو کې د افغانستان صنایعو ولې پرمختګ ونه کړ، ولې دولت او یا پانګه وال په دې ونه توانېدل، چې افغانستان لومړني احتیاجات له داخل څخه پوره کړي او یا په دې هېواد کې یو صنعتي وده تر سترګو شي، دا ټولې هغه پوښتنې دي، چې اصلاح رسنیز ګروپ د هېواد له اقتصادي او سیاسي کاربوهانو سره شریکې کړې دي.

د اقتصادي چارو کارپوه او د کابل پوهنتون استاد ښاغلی حمید الله فاروقي په دې اند دی، چې په تېرو یولس کلونو کې د افغانستان د صنعت وده نه کول، د دولت د غلطو پالیسیو له امله دی، ځکه د صنعت د ودې لپاره د قانون پلي کول یوه ستره اړتیا او غوښتنه ده، مګر په تېرو کلونو کې د قانون د پلي کولو لپاره هېڅ ډول اقدام ترسره شوی نه دی، ښاغلی فاروقي زیاتوي: دولت ونه کړی شول، چې دصنایعو د ودې لپاره قانوني او مقرر محیط ایجاد کړي، همدا ډول هغه مسئولیتونه چې دولت پرې د اساسي قانون له لوري مسئول ګرځول شوی دی، د دولت لخوا نه دي ترسره شوي، ځکه په کار وه، چې د سرمایه ګذارۍ لپاره د تشویق امکانات او زمینه برابره شي همدا ډول هغه تلاشونه چې په مجموع کې د پانګه اچونې لپاره او په خاصه توګه د صنایعو په برخه کې باید شوي وی، ونه شول.




ښاغلی فاروقي وایي، چې د افغانستان د اساسي قانون له تصویب او د افغانستان لپاره د بازار د نظام د غوراوي څخه وروسته دلته ګڼ شمېر پانګوالو د افغانستان په مختلفو ولایتونو کې پانګه اچونې وکړې، او په دې هیله و، چې دولت به د اساسي قانون په رڼا کې د دوی لپاره آسانتیاوې او زمینه برابرې کړي، چې په ترڅ کې به یې دوی سالم رقابت وکړي، او د ګاونډیو د غیر سالمو صنایعو سره به مقابله وکړي، خو دولت متاسفانه د ګڼ شمېر بهانو له لامله هغه کومکونه، چې باید له پانګوالو سره یې کړي او قانوني حمایت یې ترې کړی وی، له هغې یې سرغړونه وکړه. له همدې لامله د دولت لخوا د قانون د پلي کولو ته نه پاملرنه ددې لامل شوه، چې قانوني او رسمي اقتصاد یې د مافیایي کړیواو غیر قانوني اقتصاد تر اثراتو لاندې داسې یوې مرحلې ته ور داخل کړ، چې هغو سرمایه کارانو، چې هغوی په طمعه و، چې دلته به اقتصادي فعالیت ولري او د افغانانو لپاره به د کار زمینه برابره کړي، متاسفانه د هغوی هیلې له منځه ولاړې. سره ددې چې د دولت لخوا یو شمېر راپورونه او احصایې په ډاګه کېږي، چې سرمایه کارۍ څومره وده کړې ده، مګر د ۲۰۰۵ کال څخه وروسته د افغانستان اقتصاد ، صنعت او د سرمایه ګذارۍ برخه له ډېرو سختو ناخوالو سره مخ ده.

د فاروقي صاحب په اند ، چې نړیوال بانك او همدا ډول ګڼ شمېر نړیوالو ادارو هم د افغانستان د صنعت او اقتصاد په اړه خپلې اندېښنې څرګندې کړې دي، او د هغوی اندېښني دا ښیي، چې د افغانستان د پانګه اچونې او صنعت کچه ډېره ټیټه ده، همدا ډول

په مجموع کې د افغانستان د تادیاتو د بیلانس کچه چې مونږ ګورو، د افغانستان صادرات څه کم څلور سوه ملیونه ډالره کېږي، حال دا چې زمونږ قانوني او غیر قانوني واردات شپږ ملیارد ډالرو ته رسېږي، ښاغلی فاروقي زیاتوي: دومره ستر توپیر ددې خبرې ښکارندویي کوي، چې مونږ په داخل کې د تولید لپاره هیڅ هم نه لرو، او د خپلو داخلي تقاضاوو د پوره کولو لپاره د زراعت په شمول له بهرنیو هیوادونو څخه واردوو.

ګڼ شمېر خلك په دې اند دي، چې جنګ یو له هغو سترو لاملونو څخه دی، چې په افغانستان کې یې، د بهرنیو پانګوالو د پانګې اچونې مخه نیولې ده او د خرابو امنیتي حالاتو له لامله هغوی نشي کولی، چې دلته پانګه اچونې وکړي، او یا بهرني پانګه په افغانستان کې پانګه اچونې ته زړه ښه کړي، خو د اقتصادي چارو کارپوه ښاغلی فاروقي بیا جنګ د بهرنیو پانګه والو لپاره د پانګې اچونې یوه زمینه بولي، نوموړی زیاتوي، چې جنګ هم د پانګې اچونې پر وړاندې یوه ننګونه ده، خو په هغه کچه نه چې څومره ځیني خلك باور لري. هغه زیاتوي:

د افغانستان په تېر لنډ تاریخ کې مونږ ددې شاهدان یو، چې دلته ډېر سخت جنګي حالات و، نا امني خپل اوج ته رسېدلې وه، مګر بیا هم دلته ګڼ شمېر پانګه وال موجود و، او همدې پانګه والو خراب حالت د ځان لپاره یو فرصت ګاڼه او له دغه فرصت څخه په استفادې سره یې دلته پانګه اچونه کړې ده، خو سره ددې چې جنګ د پانګه اچونې پر وړاندې یوه ننګونه ده، خو دولت د پانګوالو پر وړاندې ګڼ شمېر ننګوني یا قصدا او یا هم د ناپوهۍ له لامله ایجادوي چې دغه موارد چې د دولت په لاس کې دي او ددې د لرې کولو توان هم لري، نو دغه موارد باید له منځه یوړل شي، د مثال په ډول دولت کولی شي د پانګوالو لپاره ځمکې برابرې کړي، د فساد سره مبارزه وکړي، او هغه غیرقانوني تجارت چې د پانګه اچونې په مقابل کې په پانګوالو تحمیلیږي د هغې مخنیوی وکړي، همدا ډول دولت کولی شي د قانون په رڼا کې د پانګوالو ترمنځ سالم رقابت ایجاد کړي، همدا ډول دولت کولی شي په ارزانه بیه د اوبو، برق او نورو مواردو په برخو کې د پانګوالو لپاره زمینې برابرې کړي. نو ځکه زه وایم چې کله پانګه وال په جنګي شرایطو کې هم خپل ځان او ګټې په خطر کې اچوي نو دولت باید د هغوی په وړاندې بې توجهي ونه کړي او له دوی څخه خپل ملاتړ وکړي.

د ګڼ شمېر کارپوهانو په وینا چې د یو هېواد اقتصاد هغه وخت وده کولی شي، چې خپل صادرات زیات او کورني صنایع یې وده وکړي، خو د دوی په وینا، چې افغان دولت د داخلي او بهرنیو پانګوالو لپاره تر اوسه د داسې شرایطو په برابرولو کې پاتې راغلی دی، چې هغوی دلته پانګې اچونې ته زړه ښه کړي.

څه موده مخکې افغانۍ خپل ارزښت له لاسه ورکړی و، او آن یو ډالر په **۵۷** افغانۍ پورې تبادله کېده، چې وروسته د افغانستان بانك لخوا بازار ته په یو غټ شمېر کې ډالر عرضه شول او د افغان ارزښت یې یو څه لوړ کړ، کارپوهان د افغانۍ اوسنی ارزښت یو کاذب ارزښت بولي او وایي، چې د افغانۍ اوسنی ارزښت د هغو ډالرو له لامله دی، چې په بازار کې موجود دی، که چېرته ډالر په بازار کې کمېږي، چې د یو شمېر ګاونډیو هېوادونو لخوا هم دغه چاره روانه ده او له افغاني بازارونو څخه ډالر وړل کېږي نو افغانۍ هم ارزښت له لاسه ورکوي، افغانۍ به هغه وخت خپل استوار ارزښت ولري، چې د صادراتو او وارداتو کچه تر یوې اندازې سره د پرتلې وړ وي، اما اوسمهال د صادراتو او وارداتو ګراف سره ډېر ستر توپیر لري.

افغانستان یو زراعتي هېواد دی، او ګڼ شمېر زراعتي محصولات یې بهرنیو هېوادونو ته د صادرېدو لپاره تیارېږي، خو په افغانستان کې د سړو خونو او له بزګرانو او باغبانانو سره د مرستې او د هغوی د حمایه کولو لپاره کومه کړنلاره او یا په دې اړه کار نه کېږي، له همدې لامله، هغه زراعتي تولیدات، چې په بهرنیو هېوادونو کې په لوړو قیمتونو خرڅېدی شي، په داخل کې په ډېره ټیټه بیه عرضه کېږي، چې له همدې لامله زمونږ زراعتي تولیداتو ته هم ستره صدمه واردېږي.



همدا ډول افغاني لاسي صنایع چې یوه ستره برخه یې قالینې جوړوي په افغانستان کې د پرمختللو او فعالو ماشینونو د نه شتون له لامله، ګاونډیو هېوادونو ته په ټیټه بیه صادرېږي او هلته له پروسس وروسته په لوړه بیه د همغه هېواد په نوم بهرنیو هېوادونو ته صادرېږي، د یو شمېر سوداګرو په خبره، چې یوازې پاکستان د افغاني قالینو د صادراتو څخه د کال څلور سوه ملیونه ډالره عائد ترلاسه کوي.

د کارپوهانو په وینا که افغان دولت د نورو ټولو فعالیتونو سره سره د صادراتو د ډېرښت او د صنایعو څخه د ملاتړ او د پانګوالو د جلبولو لپاره کار ونه کړي او ددې ته لومړیتوب ورنه کړي، نو ددې هېواد اقتصاد به ورځ تر بلې له صدمې سره مخ وي، او د همېشه لپاره به د ګاونډیو هېوادونو د صادراتو احتیاج وي.

# نقش وحدت ملی در تأمین امنیت

نویسنده: حمیدزاد

وحدت تنها ضمانت برای امنیت است و امنیت ضمانت برای توسعه در تمام زمینه ها. هیچ ملتی هرگز نتوانسته است از راه نفاق به بزرگی، دانش، ثروت و فرهنگ دست یابد؛ بلکه وحدت و همگامی شان عامل بوده است که به این نعمت های دست یابند.

به همین خاطر است که خداوند متعال می فرماید: « واعتصموا بحبل الله جمیعا و لا تفرّقوا واذکروا نعمت الله علیکم إذ کنتم أعداء فألّف بین قلوبکم فأصبحتم بنعمته إخوانا و کنتم علی شفا حفرة من النار فأنقذکم منها».

یعنی، همگی به ریسمان خدای (قرآن، اسلام و هر وسیله وحدت) چنگ زنید و پراکنده نشوید و نعمت خداوند را بر خود، به یاد آرید که چگونه دشمن یکدیگر بودید و او میان دل های شما، الفت و دوستی ایجاد کرد، و به برکت نعمت او برادر شدیدو شما بر لب حفره ای از آتش بودید خدا شما را از آن نجات داد.

مصیب ها و بلایایی تفرقه از تمام بلایای طبیعی ویرانگر تر است! صاعقه، سیل، زلزله و... مصیبت به بار می آورد و می گذرد. حتی بسیار دیده شده است که ملت های متخاصم در چنین مواقعی با هم دوست شده اند. امّا نفاق خاصیت ویگرانگری همراه با کینه توزی مداوم دارد. اگر آتش آن افروخته و به خرمن ملتی بیفتد، تا آن ها را در سالیان دراز از هستی ساقط و بیچاره نسازد، رها نمی کند.

تردیدی وجود ندارد که یکی از انگیزه های اساسی و مهم در زایش ناآرامی ها و بحران های سیاسی و اجتماعی کشورما، وجود همین تشتت و پراگندگی ملی است و تداوم حساسیت های قومی، زبانی، سمتی و حزبی پیوسته اختلافات و کشمکش های ملی در میان مردم افغانستان را بدنبال داشته است و این پدیده همواره چون غده سرطانی خواب راحت مردم ما را ربوده است.

اطراف مغرض بیرونی، با استفاده از این حربه، همیشه در میان ملت ما بحران زایی و نفاق افگنی کرده اند تا بدین وسیله، به بهره کشی های سیاسی خود ادامه دهند و در راستای تأمین منافع سیاسی، اقتصادی و فرهنگی خود و برگشتاندن زمام قضایای افغانستان به سود خویش تلاش ورزیده اند.

چون در همین چند دهه شاهد بوده ایم که بنگاه های تبلیغاتی کشورهای همسایه و غرب در زمینه برانگیختن حساسیت های قومی به خورد ملت ما آنچه را داده اند که تبعات آن بی اعتمادی، جبهه گیری در برابرهم و بالاخره کناررفتن از یکدیگر بود و همین روند با تأسف تا هنوز به شدت جریان دارد و اختلافات سیاسی که اکنون درمیان احزاب سیاسی موج می زند بیشتر از همین جا سرچشمه می گیرد.

پس نیاز جدی احساس می شود که به منظور نجات از بحران و تأمین امنیت در همه بخش های زندگی و مسدود کردن روزنه ها و منافذ بهره جویی های بیگانگان و معاندان کشور عزیز ما افغانستان تلاش های چشمگیر در راستای تأمین وحدت ملی و وفاق همگانی صورت گیرد.

**تبعات و پیامدهای احیای وحدت ملی:**

اگر به گونه بایسته و شایسته وحدت ملی را زنده سازیم و به پراگندگی ها و اختلافات خود را پایان بخشیم و بایکدیگر کنار آیم و بر همه انگیزه هایی تفرقه زا خط بطلان برکشیم، بدون شک این عملیه نیکو پیامدهای گوارا و مثبت زیرین را میداشته باشد:

- **امنیت و آرامش**

اساسی ترین دستاورد وحدت و همگرایی همانا دستیابی به صلح و آرامش و امنیت بوده و رویهمرفته، گلیم جنگ، کشتار و خون ریزی برچیده می شود چون همگرایی و ایجاد وحدت، حس نوع دوستی، همکاری متقابل، گذشت در برابر یکدیگر را تقویت می بخشد و به فتنه های اجتماعی، برتری طلبی ها، حس حذف فزیکی و حزبی و فکری یکدیگر را از بین می برد و فضای همپذیری را مساعد می گرداند.

- **برچیده شدن زمینه سلطه بیگانگان**

آنگاه که واژه وحدت به گونه راستین آ در جامعه ما عینیت پیدا کند، افزون به آنکه آسایش و آرامش را بدنبال می داشته باشد، زمینه مداخلات و دست درازی های اجانب را قطع می سازد و به عمر سلطه بیگانگان خاتمه می بخشد و حس استقلال طلبی و آزاد زیستی را به وجود می آورد.

نیروهای متجاوز در گذشته عادت به آن داشت که از رهگذر اختلاف افگنی، سلطه خود را بر قرار می کرد و اسپ تازی خود را به پیش می دواند طوری که قرآن کریم حکایت می کند: ان فرعون علا فی الارض و جعل اهلها شیعا یستطعف طائفه منهم.

یعنی فرعون با پاره سازی وحدت بنی اسرائیل برای استضعاف آنها، به استثمار نیروی آنها می پرداخت و بدین وسیله به سلطه و حاکمیت خود ادامه می داد.

امروز نیز این روش استثمارگری از طریق استضعاف ملتها و با راه انداختن اختلافات وجود دارد و زورمندان و کشورگشایان از این وسیله همواره استفاده می کنند و به تأمین منافع سیاسی، اقتصادی و فرهنگی خود می پردازد.

- **پاسداری و حفظ استواری و استحکام**

واضح است که راه یافتن اختلاف در صفوف ملت باعث سستی و ضعف آنها می شود وقوت شان را ازبین می برد، قران کریم در این مورد پیام روشن دارد، می فرماید: ولاتنازعوا فتفشلوا و تذهب ریحکم. یعنی نزاع و اختلاف نکنید که ضعیف می شوید و قوت را به انحلال می رود.

از این جا فهمیده می شود که اتحاد و همکنار شدن با یکدیگر و زدودن اختلافات ذات البینی، باعث برای قوت و استحکام و استواری همه اقشار ملت می شود ودیگر مجالی برای راه یافتن توطیه ها و دسایس، رفتارهای تبعیض آمیز و ستمگرانه و برخوردهای دوگانه در بین ملت در همه زمینه های باقی نمی ماند.

**فشرده:**




نسخه شفابخش بحران کشور و آنچه که وفاق ملی را ببار می آرود، تبعیض و تعصب و حساسیت های قومی، سمتی، زبانی و گروهی را از میان بر می دارد و در فرجام امنیت و ثبات را تأمین می سازد، همانا احیای وحدت و هماهنگی همه طیف ها، اقشار وگروهای افغانی است و تداوم حساسیت های منفی قومی و حزبی، پیوسته آتش کشمکش، ناآرامی و بحران را در کشور شعله ور نگه خواهد داشت و ملت و کشور ما را به سوی اوضاع بدتر از امروز سوق خواهد داد و ملت عزیز و مسلمان این کشور دیگر چهره زندگی آرام و آسایشمند را نخواهد دید.

بنابرین، لازم است که برای احیا و ترویج فرهنگ همگرایی و همپذیری و تنیدن رشته وحدت میان ملت مسلمان افغانستان مساعی لازم به خرج داده شود. دولتمردان و فعالان سیاسی ، متنفذین کشور، علما و دانشمندان در این عرصه از بذل هیچ گونه تلاش و ایثار دریغ نورزند تا پارچه های از هم دور افتاده را یکجا کرده و برای این ملت، فضای تنفس راحتمند را فراهم گردانند.

چلوونکی: عبدالرزاق حبیبي

# گلبرگهای ادب

## ایا پوهیږئ!

❖ چې مایکرویف ماشین وروسته له هغه جوړ شو چې له راډار څخه د پریوتلو په وخت کې د یو فزیکپوه په جیب کې چاکلیټ اوبه شو.

❖ چې د هرې کچې کاغذ له ۷ ځله څخه زیات پوره نشي را نغښتای.

❖ چې که یو موټر د ۸۰ کیلومتره په ساعت کې چټکتیا باندې روان وي، خپل د سون توکو نیمایي له باد سره په مقابله کې مصرفوي.

❖ چې د پخوانی انګریزي سیستم له مخې یوه شیبه ۹۰ ثانیو ته ویل کیږي.

❖ چې د ښیښې د ماتید و په وخت کې د هغې درځونه ۳۰۰۰ مایله په یوه ساعت کې چټکتیا لري.

❖ چې د چټک باد انرژي په ۱۰ دقیقو کې د نړۍ د ټولې هستوي انرژۍ په اندازه ده.

❖ چې یواځې الماس له یوه عنصر چې کاربن دی جوړ شوی.

❖ چې په نړۍ کې الماس تر ټولو لمړی کلکله ماده او بوران نایټریت تر ټولو دوهمه کلکه ماده ده.

❖ چې په هوا کې د هاید روجن په سون سره اوبه تولیدیږي. (له لروبروپب پاڼې نه په مننه).

## آزادی چیست؟

آزادگان را کاهلی بنده می سازد.((فردوسی))

آزادی حقیقی آن نیست که هر چه را می خواهیم انجام دهیم، بلکه آن است که آنچه را که حق داریم انجام دهیم.((ویکتور کوزن))

آزادی یعنی اینکه می خواهم نه برده باشم و نه برده دار.((آبراهام لینکلن))

کسی که بسیار می خواند و بسیار می داند، اما به هر دلیل وارد کارزار مبارزه برای آزادی نمی شود، مانند فروشگاهی بسیار بزرگ و پر از کالاست که روی در ورودی اش نوشته باشند "تعطیل است.((آبراهام لینکلن))

انسان آزاد متولد شده و آزاد است. چه می شد اگر با زنجیر به دنیا می آمد؟((فریدریش شیلر))

آسمان برای گرفتن ماه تله نمی گذارد، آزادی ماه است که او را پایبند می کند.((تاگور))

## خواهر مسلمانم تو را اسلام ملکه ساخته!

**زن در اسلام ملکه است. جایگاهی که اسلام به زن عطا کرده، از یک طرف دیگران را به حسادت واداشته است و از طرف دیگر باعث شده بسیاری از زنان غیر مسلمان به خاطر شخصیتی که اسلام برای زن قایل شده است، مسلمان شوند. زن در غرب بازیچه ای بیش نیست. به شکلهای گوناگون او را اذیت و آذار میدهند که گاهی به جان میآید و کارهایی انجام میدهد که در تصور انسان هم نمی گنجد از جمله یک زن غربی است که سی سال سن دارد آگاهانه سر دو فرزند دختر خود را میبُرد. وقتی دلیل این کار را از او میپرسند در جواب میگوید:من نمی خواستم فرزندانم عذابی را تحمل کنند که من دارم تحمل میکنم. من گرفتار شوهر و پدری هستم که دائما خمارند. بیش از حد و اندازه من را اذیت و آزار میدهند.**

**از مقاله ء محمدمحمود عبدالخالق**

## که غواړئ چې خپل عیبونه ومومئ نو:

۱- د روحي او نفسي علومو له پوهانو سره ناسته پاسته ولرئ.

۲- د ځان له پاره متدین او زړه سواند ملګری پیدا کړئ.

۳- د ځان په هکله د مخالفینو نظر واورئ او د هغو د نیوکو د لرې کولو لپاره کار وکړئ.

۴- د خپل ځان د عیبونو د موندلو په موخه پر خپلو کړو، وړو ژور نظر ولرئ.

